الحيُّ لاالٰہ الاالله محمد رسول الله القیُّومُ






# پښتون
# تر
# پښتونستان

دوئیم ایډیشن

لیک : ډاکټر خان



خپرونکے: خپلواک پښتونستان غورځنګ

# پښتون تر پښتونستان

(دویم ایډیشن)

ډاکټر خان

د چاپ نېټه: 2023ء

# خپلې خبرې

پښتنو وروڼو، خوېندو هر زوړ کتاب، خبره يا حواله ضرور نه ده چې رښتيا وي. دغه وجه ده چې په دې کتابچه کې زړو کتابونو، خبرو، حوالو ته لږ او منطقي خبروته ډېر ځاے ورکړل شوے دے.

پښتنو وروڼو،خويندو، زۀ په خپل ځاني د ايکسټرا سينسري پرسپشن يعني د هپناټزم وغېره يو طالب علم يم او د تحريک نه مخکې مې د ډاکټر خان ESP ريسرچ سنټر په نوم اووۀ،اتۀ کاله يو وړه شان خپل ځاني ريسرچ اداره هم چلولې. او په دې لږ ډېر مهارت هم لرم. چې د لاشعور د بيخ نه په زرګاو کالو زړې خبرې هم راوباسم،خو هغه خبرې هم په شعوري دنيا

کې په منطقي توګه تړون غواړي. دومره یاد ساتئ چې هر یو DNA د هپناټزم په ژبه کې پوسټ هپناټیک سجیشن کاروي. او هر DNA ته دغه پوسټ هپناټیک سجیشن د دغه DNA خالق الله تعالی ورکړے،چې DNA یې په وخت کاروي.

ان شاء الله د پښتون تر پښتونستان دریم ایډیشن کې به د پښتون قوم بنسټ د سائنس او منطق په مطابق نور هم واضح شي.

ستاسو ورور ډاکټر خان

# فهرست

# د هرڅه نه مخکې

((د هرڅه نه مخکې اول دا چې دا نړۍ د الله تعالیٰ ملک دے، په دې کې مېشته ټول انسانان که هغه د هر قوم، رنګ، نسب، کسب، مذهب، فرقې سره تعلق لري، د انسانیت له اړخه د الله تعالیٰ یو شان مخلوق دے. بنیادي قومونه او قبیلې الله تعالیٰ د دې ملک نړۍ اداري او د ادارو څانګې دي او بېله بنیادي ژبه د هر قوم بېله ښکاره پېژندګلو ده. دویم د خپل قوم د یووالي، امن، پرمختګ، حق او ښه ژوند دپاره کار کول، غږ پورته کول قوم پرستي یا د بل قوم سره تعصب نه دے.))

# د قوم پېژندګلو

وَ جَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّ قَبَآىِٕلَ لِتَعَارَفُوْا (سورة الحجرات: ١٣)

قرآن کريم کې دي چې قومونه ،قبيلې د پېژندګلو دپاره دي. اوس اول سوال دا راپيدا کيږي چې پخپله د يو قوم څه پېژندګلو ده؟ دوېم دا چې ددې بېلو بېلو قومونو جوړولو ضرورت څه ؤ؟درېم دا چې،آيا دا بېل بېل قومونه يواځې په انسانانو کې دي؟

پښتنو وروڼو ،خويندو! قوم دهغه قبيلو او خېلونو د خلکو ترمنځه نزدې تړون ته وايي،د چا چې په وينه، ژبه، جامه او دود ، دستور کې نزدې تړون وي. دا هم لازم ده چې د بېل قوم به خامخا خپله بېله ژبه وي چې د بلې ژبې لهجه به نۀ وي.

پښتنووروڼو ،خويندو! دا دنيا د الله تعالیٰ ملک دے او قومونه ،قبيلې او خېلونه يې ادارې او د ادارو څانګې دي.

او که مونږ لږ غور اوکړو نو زمونږ سترګې به اوغړيږي چې د الله تعالیٰ په دې ملک، نړۍ کې د

قومونو، قبيلو او خېلونو دغه ادارتي نظام يواځې په انسانانو کې نۀ دے. بلکې الله تعالیٰ دغه ادارتي نظام د هوا په مارغانو او د زمکې په ځناورو او د اوبو په مهيانو وغېره کې هم جوړ کړے دے.

الله تعالیٰ د کمال تر حده د هر بېل قوم مارغه ، ځناور، او مهي وغېره ته د بېلې پېژندګلو دپاره نۀ يواځې بېله بېله ژبه ورکړې ده،بلکې په ادارتي توګه کار اخستو دپاره يې ورته بېل بېل خوي،خصلت هم ورکړے.

لکه باز او کارغه دواړه مارغان دي خو که غور اوشي نو د باز او کارغه يواځې ژبه بېله بېله نۀ ده بلکې خوي، خصلت کار يې هم بدل بدل دے.

# د پښتون قوم بنسټ

❖پښتانهٔ د ادریس علیه السلام هغه ملګري دي چا چې د ادریس علیه السلام په مشرۍ کې دقابیلیانو د فساد او غاصبانه کړنو خلاف د تاریخ اولنۍ جنګ کړے ؤ.

❖د ادریس علیه السلام په وَېنا د کلک قومي بنسټ له خاطره د نورو نه بېل شوي او لوړو ته ختلي وو.

❖ادریس علیه السلام د دغه خپلو ملګرو ترمینځه د کلك قومي بنسټ له خاطره د خالق په حکم د تاریخ اولنۍ فطرتي دستور هم ټاکلے ؤ کوم چې د "پښتو" په نوم یاد شو او د پښتو په دغه دستور تنګ کوونکے پښتون .

❖دغه وجه ده چې لا تر ننه د پښتو په دستور تنګ کوونکو ته پښتون وئیلے کیږي.

❖نن هم که یو پښتون د پښتو د دستور نه پرته څه کار کوي نو هغه ته دا پېغور ورکړل کیږي چې په

تا کې خو هڅو پښتو نشته، ته خو هڅو پښتون نهٔ يې.

❖پښتو د خالق په حکم د تاريخ اولنے تاکلے فطرتي دستور ځکه هم دے چې يو خو ادريس عليه السلام د آدم عليه السلام په ژوند کې پيدا شوے ؤ، دويم ادريس عليه السلام د الله تعالىٰ پېغمبر او د ځنو فرښتو سره يې ملګرتيا هم لرله، او د الله تعالىٰ په حکم او د ملګرو فرښتو په مشوره يې د پښتو دستور تاکلے ؤ، دغه وجه ده چې پښتون د تاريخ اولنے فطرتي دستور دے.

"که اسلام فطرتي دين دے، نو پښتو فطرتي دستور"

❖ادريس عليه السلام د پښتو دستور سره سره د خالق په حکم د تاريخ په اول کې د ملګرو فرښتو سره د خپل لاس ګنډلې جامې (قميض پرتوګ) اغوستې او د خپل پښتون قوم د پاره يې خوښې کړې وې، چې لا ترننه د پښتون قوم جامه ده.

# پښتون قوم د سائنس او منطق په نظر کې

پښتنو وروڼو،خویندو! پښتون قوم د سائنس او منطق په نظر کې د بني اسرائیل یا د بل قوم قبیله، ښاخ یا برخه نهٔ دے.بلکې د سائنس او منطق په نظر کې هم پښتون قوم د وینې ،ژبې ،جامې او دود ، دستور په لحاظ ځانته قوم دے.

د اسلامیه کالج پوهنتون پېښور ،وائس چانسلر ډاکټر حبیب احمد او د هغه د ټیم،چې پکې ورسره د یونیورسټي آف کېلیفورنیا ډېوس برېن همفل،چې بائیلوجیکل،انتراپولوجي پروفېسر ؤ، هم ګډون لرلو. او په مرسته کې ورسره د کے، آر، اېل (عبدلقدیرخان ریسرچ لېب) سائنټسټ عبدالحمید وغېره هم شامل ؤ. د سائنسي څېړنو مطابق پښتانه بني اسرائیل نهٔ دي. بلکې دوي خپله ځانګړې پېژندګلو او خاصیتونه لري. دغه خبرې ډاکټر حبیب احمد صېب په دوه زره شپاړسم 2016-10-23 کې د ډیوه خبریال فضل عزیز سره په مرکه کې هم ښکاره کړې وې.د ډاکټر حبیب احمد مطابق هغوي د پښتونخوا د یوسفزو ،مومندو ، وزیرو ،خټکو او نورو سره سره په پښتنه خاوره مېشته د خواوشا ټولو قبیلو،خېلونو،چې پکې سواتي ،

اعوان ،ګجر ،کرړال او سپدان هم شامل وو. د غاښونو ډي اېن اے د تحقيق نه پسته دې خبرې ته رسېدلے چې پښتانه په سائنسي توګه يو خلک دي. ددې خاورې خپل خلک دي،د دوي نۀ د بني اسرائيل سره څه تعلق شته او نۀ د چاپېره نورو قومونو سره.

پښتنو وروڼو ،خويندو! که مونږ په منطقي توګه هم اوګوروو نو پښتانه د ژبې، جامې او دود ،دستور مطابق ځانته بېل قوم ثابتيږي. که مونږ په پښتو ژبه غور اوکړوو نو پښتو ژبه نۀ خو د بني اسرائيلو د عبرانۍ ژبې لهجه ده او نه په نړۍ کې د بلې ژبې لهجه ده. پښتو ژبه په ښکاره توګه ځانته بېله ژبه ده. د پښتنو جامه،قميص پرتوګ نۀ خو د بني اسرائيلو جامه ده او نۀ د هندي ،عربي ،چيني، فارسي يا نورو. ځکه چې دغه ټولو په معلوم تاريخ کې د پښتنو نه مخکې ګنډلې جامه نۀ ده اغوستې.

دغه شان پښتو د قانون په توګه هم يو ډېر زوړ او د پښتون قوم د نوم سره تړلي فطرت ته ډېرنږدې قانون دے. که اسلام فطرتي دين دے، نو پښتو فطرتي دستور.

# د پښتون قوم بنسټ
# او راپورته شوې پوښتني

د پښتون تر پښتونستان د اولني چاپ نه څو میاشتې پس د شیخ الحدیث والتفسیر مولانا مفتي محمد زرولي خان صیبؒ د ابنِ خلدون او امام رازي په حواله یو بیان راته ملګرو رامخکې کړو چې د هغه بیان مطابق پېښور د نمرود د سلطنت دارالخلافه وه. جمرود هغه علاقه ده چې نمرود پکې ابراهیم علیه السلام اوور ته اچولے ؤ. د مفتي محمدزرولي خان صیبؒ مطابق د جمرود پخوانے نوم اصل کې نمرود ؤ، چې په جمرود بدل شوے دے.

مفتي محمدزرولي خان صیبؒ په مطابق د ابراهیم علیه السلام درې ښځې وې چې د یوې ښځې نوم یې خیبره ؤ، او د هغې نه هم د ابراهیم علیه السلام یو ځوې ؤ، چې ابراهیم علیه السلام ورته پښتون نوم ایښودے ؤ. د مفتي محمد زرولي خان صیبؒ مطابق پښتانه د ابراهیم علیه السلام د دغه ځوي پښتون اولاد دے.

پښتنو وروڼو، خویندو! اوس که تاسو لږ غور او کړئ

نو تاسو به په دے سوچ مجبوره شئ چې د وخت يو جليل القدر پېغمبر ،ابراهيم عليه السلام خپل ځوي ته پښتون نوم ولې ايښودوو؟ ځکه چې څوک خپل بچي ته يو نوم ورکوي نو شاته يې خامخا څه تاريخ،خامخا څه راز وي. مطلب چې ابراهيم عليه السلام خپل ځوي ته پښتون نوم کېښودو نو خامخا ددغه نوم شاته يو وجه،يو تاريخ بلکې يو ښه نامتو تاريخ موجود ؤ.

دمفتي محمدزرولي خان صيبؒ د بيان نه دا هم ښکاره ده چې پښتانه د يعقوب عليه السلام اولاد يعني د بني اسرائيل نه زوړ قوم دے. ځکه چې پخپله يعقوب عليه السلام د ابراهيم عليه السلام په نمسو کې راځي. مطلب يعقوب عليه السلام د ابراهيم عليه السلام په نمسو کې دے.

پښتنو وروڼو،خويندو! اوس که دلته هم مونږ په منطقي توګه غور اوکړوو نو دا خبره ښکاره ده چې پښتانه هغه خلک دي چې د اٰدم عليه السلام د تاريخ په بنسټ کې يې د ادريس عليه السلام د قابليانو خلاف ملګرتيا او ملاتړ کړے ؤ. پښتون قوم د اٰدم عليه السلام د تاريخ د بنسټ په قومونو کې ځکه هم دے چې ادريس عليه السلام يو خو د ادم عليه السلام په ژوند کې

پېداشوے ؤ او دويم د اٰدم عليه السلام د ځوي، شيث عليه السلام نه پسته دريم پېغمبر ؤ. دا هم ښکاره ده چې ادريس عليه السلام ګنډلې جامو اغوستونکے اولنے کس ؤ. او که تاسو غور اوکړئ نو په ښکاره توګه د تاريخ په چاپېرچل کې اول ځل پښتون نه علاوه ګنډلې جامې قميص پرتوګ نۀ خو يهودي، عربي، چيني او هندي اغوستے او نۀ بل چا.

دغه شان پښتنو وروڼو،خويندو! نور ډېر داسې منطقي حقائق دي چې پښتانه د ادريس عليه السلام سره تړي او ادريس عليه السلام د پښتون قوم سره. لکه پښتو د قانون او دستور په توګه يو داسې فطرتي قانون او دستور دے چې پښتون قوم د اٰدم عليه السلام د تاريخ بنسټي قومونو کې راښکاره کوي. که د ادريس عليه السلام د ژوند کړۀ وړۀ او د پښتنو د ژوند کړۀ وړۀ د کمال ترحده نزدې دي نو بل خوا د سينه در سينه تاريخ مطابق د پښتونخوا په باجوړ کې د ادريس عليه السلام د ځوي قبر چې د غازي بابا په نوم يادېږي،هم د ادريس عليه السلام او د پښتون قوم سره او د پښتون قوم د ادريس عليه السلام سره په تړون مهر لګوي. ان شاء الله په دريم ايډيشن کې به دا خبرې نورې هم واضح شي.

# پښتو ژبه

دومره یاد ساتئ چې بېل بېل بنیادي قومونه او بېلې بېلې بنیادي ژبې د الله تعالیٰ د ادارتي نظام دپاره نېغ په نېغه د خالق ذوالجلال تخلیق دے، دا شعارالله دي.

ځکه د دې پرېښودل منع دي،او الله تعالیٰ یوائې په انسانانو کې هر بنیادي قوم ته بېله بېله ژبه نۀ ده ورکړې بلکې د هوا، زمکې او د اوبو ځناورو، مارغانو او مایانو کې یې هم هر یو بنیادي قوم ته بېله بېله ژبه او خصلتونه ورکړي، بلکې که تاسو دا کتل غواړئ چې یو قوم بنیادي بېل قوم دے او کۀ د بل قوم برخه ؟ نو د هغوي په ژبه غور وکړئ چې بېله ژبه ده او کۀ د بلې ژبې لهجه ؟ که چرې یوه ژبه د بلې ژبې سره په وېنا کې نژدې تړون لري نو دا بېله بنیادي ژبه نه، بلکې د بلې ژبه لهجه ده.

مطلب لهجه د اسانۍ دپاره د انسانانو خپل جوړښت دے او بېله بنیادي ژبه د خالق د ادارتي نظام

شعارالله، کوم چې نورو مخلوقاتو کې هم ښکاره دي.

اوس که تاسو پښتو ژبه په دغه تول وتلئ نو تاسو ته به ښکاره شي چې پښتو ژبه یوه بېله بنیادي ژبه ده، چې په وېنا کې د خواؤشا هېڅ یوې بلې ژبې سره نزدې لهجوي تړون نهٔ لري.

لکه راشه، لاړ شه، کښېنه، پاځه، وخېژه، وخوره، ډک، تش، نزدې، لرې، ښکته، پورته او داسې نور.

دغه وجه ده چې په ښکاره توګه هم پښتو ژبه یوه بېله بنیادي ژبه ده، او پښتون قوم یو بېل بنیادي قوم.

"دستور مې پښتو هم ژبه پښتو
فطرت راته نوم پښتون راکړے"

# خوئي خصلت

دا ښکاره ده چې د هر بېل بنيادي قوم خوئي خصلت کې به خامخا فرق وي، او دا يواځې په انسانانو کې د بېل بېل بنيادي قوم خبره نه ده بلکې که تاسو د هوا په مارغانو ، د زمکې په ځناورانو ، تردې چې د زمکې په مهيانو هم غور اوکړئ نو په هغې کې به هم د هر بېل بنيادي قوم ژبه بدله وي، هم دغه شان به يې خوئي خصلت کار بدل وي :

لکه باز او کارغه دواړه مارغان دي، خو څنګه چې ورته فطرت بېله بېله ژبه ورکړې ده هم هغه شان يې خوئي خصلت کار هم بېل بېل ورکړے دے.

بس هم دغه شان په انسانانو کې د هر بنيادي بېل قوم په خوئي خصلت کې به هم څه نا څه فرق خامخا وي او هم دغه فرق د الله تعالىٰ د دې ملک په ادارتي نظام کې د هغه قوم کار راښکاره کوي.

((د پښتون قوم خصلت ))

څومره چې د پښتون قوم دستور " پښتو " د فطرت سره نزدېوالے لري هم دغه شان د پښتون قوم خوئي خصلت هم فطرت ته ډېر نزدې دے، لکه ((ښېګړه، ننګ ، بدل، زړۀ سواند ، پت، وياړ، حيا ، مشري))

# پښتون قوم او دين

پښتون قوم په اکثريتي توګه د ادريس عليه السلام نه پسته تر محمد صلی الله عليه و آله وسلم پورې بل يو پېغمبر هم نه دے منلے، د هغې وجه دا هم وه چې نور پېغمبران د خپل خپل قوم دپاره راغلي ؤ او محمد صلی الله عليه و آله وسلم د ټولې نړۍ د قومونو دپاره، بله دا هم چې پښتانه په قومي توګه د ادريس عليه السلام نه تر محمد صلی الله عليه وسلم پورې د شرک نه لرې پاتې ؤ، بل که اسلام فطرتي دين دے نو پښتو فطرتي دستور، دغه وجه وه چې پښتنو په ګڼه د اخيري پېغمبر محمد صلی الله عليه وسلم بيعت اوکړو، ژوره وجه يې د فطرت، رګ يعني د جينز کمالات دي.

څنګه چې په هيپناټزم کې پوسټ هيپناټک سجيشن ((((Posthypnotic Suggestion په لاشعور کې پروت وي او په وخت شعور ته راپورته کيږي او عملي کيږي، بس همدغه شان بعضې خبرې معلومات، بيمارياني، په زرګونو کاله په رګ، جينز کې پاتې کيدېشي او په وخت رابرڅېره کيدېشي.

د دجاليانو خلاف د جنګ بندوبست هم د قابليانو سره د تاريخ په اولني جنګ کې پټ دے د معراج د سفر په موقع د ادريس عليه السلام ، محمد صلی الله عليه وسلم ته ورور وئيلو کې هم دغه لوې راز پټ دے.

.

# پښتنه خاوره د پښتون قوم کور

په دې سیمه کې چې څنګه د نسله هندیانو خاوره معلومه ده، د بلوچو خاوره معلومه ده، څنګه چې د تاجکو تاجکستان معلوم دے، څنګه چې د ازبکو ازبکستان معلوم دے، د پارسیانو ایران معلوم دے، بس همدغه رنګ له امو تر خواوشا اباسینه، پښتنه خاوره د پښتون قوم برخه ده او څنګه چې د نسله هندیانو په خاوره، وسائلو، سرکاري دفترونو اولنے حق د نسله هندیانو او د هغوي د ژبې دے،

څنګه چې د بلوچو په خاوره، وسائلو، سرکاري دفترونو او نوکرو اولنے حق د بلوچو او د هغوي د ژبې دے، څنګه چې د تاجکستان په خاوره، وسائلو ، سرکاري دفترونو او نوکرو اولنے حق د تاجکو او د هغوي د ژبې دے.

څنګه چې د ازبکستان په خاوره، وسائلو، سرکاري دفترونو او نوکرو اولنے حق د ازبکو او د هغوي د ژبې دے. څنګه چې د ایران په خاوره، وسائلو، سرکاري

دفترونو او نوکرو اولنۍ حق د پارسیانو او د هغوي د ژبې د ے،

بس همدغه شان نه کم او نه زیات په پښتنه خاوره، وسائلو او دفترونو اولنۍ حق د پښتو او پښتون د ے، ترڅو چې یو جوګه پښتون ځوان هم بې روزګاره وي تر هغې د پښتنې خاورې په ټولو سرکاري څوکو او نوکرو اولنۍ حق د جوګه پښتنو ځوانانو د ے،

خو د دې مطلب هیڅ کله دا نه د ے چې په پښتنه خاوره مېشته د نورو قومونو خلک هیڅ حق نه لري..
پکار ده چې په پښتنه خاوره مېشته د نورو قومونو خلکو ته د پښتون قوم د سیوري لاندې د نړیوال دستور مطابق هر حق حاصل وي، په خاصه توګه څومره حق چې د ایران، پنجاب، تاجکستان، ازبکستان په خاوره پښتو او پښتون ته ورکړلے شوے وي. لازم ده چې په پښتنه خاوره مېشته فارسیانو، پنجابیانو، تاجکانو، ازبکانو ته هغه هومره حق خامخا ورکړلے شي.

# په پښتنه خاوره د پښتو ژبې حق

ځنګه چې نړیوال دستور دے چې د هر قوم په خاوره د هغه قوم د ژبې دے،
چې د ښوونځو، پارلیمان، دفتر او میډیا اولنۍ ژبه به د هغه قوم خپله وي،
بس همدغه شان د پښتو ژبې حق دے چې په پښتنه خاوره به د ښوونځو، پارلیمان، دفتر او رسنو (میډیا) اولنۍ ژبه خامخا پښتو وي،
دومره یاد ساتل پکار دي! چې بېله ژبه یواځې د یو قوم د بېلې پېژند ګلو نخښه نه وي، بلکې د یو قوم په یووالي، پوهې، امن او پرمختګ کې هم د قوم د خپلې بېلې ژبې ډېر لوې لاس وي، که هغه د سائنس په لار، رګ، جینز، DNA، په تړون د تیرو پیړیو د تجرباتو نه د فائدې اخستو خبره وي او که د شعور لاشعور یا د خپلو پیړیو سره د روحاني تړون په لار د فائدې اخستو خبره وي،
دغه وجه ده چې د نړۍ خواوشا ټول آزاد، پوهه،

پرمختللي او د پرمختګ په لار روان قومونه، په خپله خاوره خپلو ماشومانو ته په خپله ژبه کې بنيادي زده کړه خامخا ورکوي او د نړۍ اهمې ژبې په خپله خاوره بس د يؤ ژبې په توګه ساتي،

په خپله خاوره خپلو ماشومانو ته په خپله ژبه کې زدکړه د يو قوم د بېل وجود د ژوندي ساتلو سره سره د هغه قوم د آزادۍ ښکاره نخښه او هڅه هم ده، اوس که پښتون قوم د بېل قوم په توګه ځان ژوندے ساتل غواړي، د خپلې خاورې او قوم د آزادۍ هڅه ژوندۍ ساتل غواړي، د خپل پښتون قوم د يووالي، پوهې او پرمختګ هڅه ژوندۍ ساتل غواړي نو خامخا به په خپله پښتنه خاوره خپلو ماشومانو ته بنيادي زدکړه په خپله پښتو ژبه کې ساتي،

د پارليمان، دفتر او رسنو (ميډيا) ژبه به خامخا پښتو ساتي.

# پښتنو

پښتنو! خپل ځان، خپل قوم او خپل کړۀ وړۀ، خپل کار اوپیژندئ،
تاسو ته د پښتون په نوم پیژندګلو، تعارف ستاسو خالق درکړې ،
ستاسو پیژندګلو ستاسو تعارف پښتون قوم دے او د پښتون قوم پیژندګلو، تعارف د پښتون قوم ژبه، جامه، دود دستور دي، ستاسو کړه وړه او ستاسو خاوره ده،
تر قیامته د دې هرڅه خدمت او ژوندي ساتل په تاسو لازم دي،

" متحد شئ او متحد اوسئ"

پښتنه خاوره د پښتون قوم برخه ده، ستاسو برخه ده، د دې په خاوره، وسائلو، سرکاري، دفترونو او نوکرو د پښتون قوم اولنے حق ثابت کړئ، د خپلې پښتو ژبې اولنے حق ثابت کړئ، خپل اولنے حق ثابت کړئ،

یاد ساتیې! که تاسو د الله تعالیٰ په دې ملک نړۍ په نظام کې په قومي توګه خپل کردار په ښه توګه لوبول غواړئ نو د دې دپاره د پښتون قوم په توګه ستاسو یووالے او په پښتنه خاوره، وسائلو، سرکاري دفترونو او نوکرو د پښتو پښتون اولنے حق ثابت ساتل لازم دي، یاد ساتیې ! پښتنه خاوره د پښتون قوم ستان دے، د پښتو پښتون ستان دے،

که تاسو په پښتنه خاوره،وسائلو،سرکاري دفترونو ،نوکرو اولنے حق د پښتون قوم ثابت اوساتلو، په پښتنه خاوره مو د ښونځو، پارلیمان، دفترونو او رسنو (میډیا) اولنی ژبه پښتو اوساتله نو مبارک مو شه ، پښتنه خاوره په ریښتینې توګه د پښتو پښتون ستان دے پښتونستان دے،

تر قیامته د نړۍ د قومونو مشري مو نصیب شه .

ستاسو وروره ډاکټرخان

د پښتون قوم مینوال پښتنو !
ووټ نه غواړوو،
د اګاهۍ، جرګې او پاڅون په لار،
پښتون کلک پښتون لیدل غواړوو،
ورک پښتانه را پښتانه کول غواړوو،
د پښتون قوم بیل وجود مضبوط لیدل غواړوو،
د پښتون قوم او پښتنې خاورې کلک تړون غواړوو،
په پښتنه خاوره د پښتو پښتون اولنے حق ثابت لیدل غواړوو،
د دې لپاره د پښتون قوم مینوال پښتنو ستاسو کلک ملاتړ غواړوو،

خپلواک پښتونستان غورځنګ